# بلال په وینو کې

## شعري غونډه



نور محمد "لاهو"




## دکتاب پیژندنه

دکتاب نوم: بلال په وینوکی

شاعر: نورمحمد لاهو

خپروندوی: خوشال فرهنگي ټولنه

ګمبر: ۵۰۰ ټوکه

نیټه: ۱۳۷۸

# اهـــــداء

دغه څوکرۍ وزۍ او خوږې کرښې د هیواد ډیر ځوان تکړه او قدرمن هنرمند حفیظ الله گردش ته چې سحر گراو ملنگي آواز یې ما د شعر نا پیژندل شویو سیمو ته بیایی

ډالۍ شوې



# لاهوداسې دی لاهو

د ۱۳۷۳ کال لومړنی شپې او ورځې وې او دنوي کال همدا تنکۍ شیبې ، هره شیبه
دګولیو او راکټونو ، دسربو او او رونو پرلاسونو قتلیدې او دقتل په همدغه موسم کې مې
له یوه ځوان شاعرسره پیژند ګلوي وشوه . هغه ورځ ټول کابل دګولیو او لوګیو له زوره
ځنګیده او له دې سره سره چې دراکټونو ، بمونو او دټوپکود تو خیو او چیغوله زوره مو خپل
غږهم نه شو اوریدلی دشعر چرګې ته کیناستو او له هغه زلمی شاعرنه مو وغوښتل چې
شعرونه راته واوروي دوینې شعر ، دمینې شعر او دمینو دقتل شعر او هغه ورځ مو دهغه
شعرونه واوریدل او دادی ترننه شعرونه راته اوروی او هره ورځ شعرونه راته اوروي .

ته به وایې کوچی دی ، همداشیبه یې چرته رمه پنډه کړې ، پرګټ ناست دی او شپیلی
درته غږوي ، ته به وایې ښاریې نه دی لیدلی ، دغرونو له نسله دی ، ساده ، رښیتنی او
درونډ قد قامت یې دکوچیانو دی ، خبرې یې دکوچیانو دي ، جامې یې دکوچیانو دی او
شعر یې کوچیانی دی له درواغوتش او له صمیمیته ډک . هوکې ! هغه خدای همداسې پیدا
کړی او ښایې یوازې دشعر او شاعرۍ له پاره یې پیدا کړی وي ، دا ځکه چې هغه یوازې
شاعردی او یوازې یوازې هنر منددی .

لاهو درته یادوم . شاعر لاهو مثل لاهو ، نقاش لاهو ، اوکارتونیست لاهو .

نورمحمد لاهو یو څو کاله کیږي چې دشعر او شاعرۍ په ناپایه سمندر کې لاهو دی ،
اوري رااوري ، په څپوکې خبرې اودساحلونو او ګلکځونو غاړی ته په لامبو لامبو روان دی.

لومړی

خوستر یایی نه زده او تم یې نه زده . لکه دشعر باران چې پرې ووري ، لکه دشعر ښکلې او ګلورینې پیغلې یې چې دذهن اوزړه پر کاله ورته خپل زړه اوستر ګی کرلې وی ،لیکی یې لیکی یې اوښه یی لیکی او هغه په همدې ځو کلونوکې زما او زما همزولو شاعرانو دشاعری له ټولو کلونو نه ډیره شاعرې کړی ده .که څه هم چې ډیر ویل او ډیر لیکل دچا خبره سړی خرابوی خولاهویې خراب نه کړبلکی غښتلی یې کړ ، شعر کې یې تکرار نشته هره ورځ نوې نوې خبری راته کوي اود هرې ورځې په تیر یدو سره یې شعرنوی رنګ او نوی خوند پیداکوی .

لاهو مین دی اولاهو په مینه کې مات شوی دی . لاهو مینه کړی خو مینه یې نامراده وه . لاهودلنډې مودې له پاره دمینې دښاتوله جامونو نه ځوغړپونه کړی دی ، خوهغه ځو غړپه ورته په زهرو واوښتل او لاهو هره ورځ لګیادی دزهر و غړپونه کوي.

نو له همدې کبله دلاهو شعر دغمونو شعردی ، دویر شعر دی ساندو شعر دی او دمینو او دمینې دمرګ شعر دی . لاهو په شخصی او فردی ژوند کې هم ماته خوړلې او په ټولنیز او هیوادنې ژوند کې هم ، یو خوا په هر ګام هره لویشت او هر ځپک کې وینی ، بی سره تنې ، مات هډوکي ، دکوپړیو ځلي ، دنغریو سړښت او له بلې خوا نامراده مینه ، نامراد عشق او نامراده ځوانی:

چې ته لاړې یو سورګل مې هم په ځانګو کې شین نه شو

ستا دتلو سره دباغ ښکلی نیالګي مې ټول کوچیان شول

او مالت مې نیستان شو دشپیلیو

**

سپی مې ژوی وراسته مات غوندی هډوکی

دغه وری ، داخیرات غوندې هډوکی

او په شوې وینی ینې سوز کی غوښې

تنبتیدلې سپینې سپینې تنگی غوښی

**

دهر چانوی کار بې عیبه او نوې تجربه پخه نه وی او دلاهو دشعر او شاعری دکار پیل هم همداسی دی .

خو دلاهو دوروسیتو کلوونو شعرونه هم دظاهري او هم دذهني جولی له پلوه زمونږ دځوانې شاعری له غوره بیلگوڅخه دی او یو شمیر خونادر هم دی . او دلاهو په شاعری کې خو ترټولو مهمه خبره داده چې هغه راته دتمثیلي شعر یوه لویه تشه راډکه کړې او له شیانو سره ذهنی اړیکه دهغه په شعر کې تر ډیره حده استثنا یې ده. لاهو په شیانو کې دومره نفوذ کوی چې هغو شیانو او دهغو شاعرانه تمثیل ته دډیرو شاعرانو قلم نه دی چلیدلی او هډو پام یې ورته نه دی شوی :

ښیښې ماتې شولی های های !

کانیه څه ویې ؟

وې: دی خلکو پسات وکړ

اوف په مایې

زمالونې ووژلې .

او یادا شعر :

یوې مور دوژل شوي زوی سینی نه

وینی سور غشی راوویست

وې : بی زوبه دې کړم ولې ؟

ورته غشی په ژړا شو

وې ویل : زه هم شوم بې موره

هغه یورې ونه وینې ؟

چې یوه گوته یې نښته

همغه زما مور کې ده .

ښایی له شیانو او پدیدو سره دشاعر همدغه مستقله ذهنی اړیکه وی چې دلاهو شعر یې له نورو نه مستقل کړی او شاعر یوه نه وهلي لاره ځان ته غوره کړې ده او تک تنها پرې روان دی. لاهو په مختلفو شعری فورمونو کې شعرونه لیکلی : غزل ، قصیده ، مثنوی ، آزاد قطعی او نظمونه ، او په دې ټولو برخو کې یې تجربی کړی او دخیال نیلی یې ځغولی دی . خوزما په اند لاهو دمثنوی په قالب کې دخپل اندو خیال کښت سمسور ساتلی شی او غځونې پکی کولی شی. نو له همدی کبله له لاهو نه زما خواست او غوښتنه تل همداوه چې دافورم و پالی او داز ورنوی کړی. زه نه وایم چې په نورو فور مونوکې دهغه دشاعرۍ مزه کمه ده ، زه وایم چې دهغه دشاعرۍ مزه په مثنوی او له هغه وروسته په قصیده کې زیاته ده

دلاهو دغزليزې شاعرۍ دنيا هم خوږه ، رنګينه او نګه ده او ډېر څه پکې نوي ښکاري.

دهغه يو شمېر غزلو نه دپښتو دځوان شعر بهير دغزليزې شاعرۍ ښکلې بيلګې دي :

نرګس ته يې کتلو ستا يې ستر ګې جوړولې

نقاش چې دژوندون په پاڼه ته انځورولې

***

دياقوتو له بارانه به تېر جوړوي څوک

جانه ستا له دې وريښمو به ښتر جوړوي څوک

چې منګيو کې بيا پيغلو ګلورينې او به راوړې

پاس دسيند په آئينو کې خپل بشر جوړوي څوک

يو شين رنګ دلوګووم دتوپان غيږه کې واران شوم

انځور ومه په ځمکې دباران غيږه کې وران شوم

يو ګل ومه وحشي دلېرې غزو کانو په منځ کې

دعشق په ورزو راغلم دجانان غيږه کې وران شوم

خوږښتيا خبره داده چې موږ اوس اوس نه خو د غزلبولو شاعرانو څه کمي لرو او نه خو دغزليزې شاعرۍ . مګر دقصيده بولو او مثنوي بولو شاعرانو کمي مو پخوا هم درلوده او نن هم. دا چې لاهو کولي شي ددې فورمونو روزنه او پالنه وکړي او په نوي اندازکې يې وکړي او دابوډاګان بيرته راته ځوانان کړي له دې نه به ښه زيري بل کوم وي ؟

دلاهو په ټول شاعرۍ ، بیا په تیره د هغه په مثنویو او قصایدو کې کوم څه چې ډیر د پاملرنې وړ بریښي هغه د عاطفي انځورونه ده . عاطفه د هر شعر یو حتمي جز دی او له دې پرته شعر شعر نه دی . خو هو مره عاطفه چې ما د لاهو په شعرونو کې لیدلې ، کتلې او لمس کړې مې ده هومره مې په نورو کې نه ده لیدلې .

بله کومه خبره چې د لاهو په شعرونو کې مطرح ده هغه د رنګونو راوړنه او د رنګونو استعمال دی . دا ځکه چې لاهو انځورګر او نقاش هم دی او څومره په زړه پورې ده چې څوک دې شاعر وي او نقاش هم . کلیمو دی هم ورته د موم بڼه غوره کړې وې او رنګونو هم ، کله له شعر نه تابلو جوړه شي او کله له تابلو نه شعر او د چا خبره غوري لاغوړ شي .

وګورئ دا بیلګه :

چې تک سپین مخ ګرانه ، ستا شو

او سور رنګ شو د خاټولو

ګلابي اروا وې پوښوې

د زړې دنیا کالبوت کې

چې د شنو پاڼو څادر

ورباندې خور شو

عجیبه زیږدایې وکړه

بنفشه یې منځ ته راوړه !

زه دې ومرمه ادا ته

شپږم

پسرلی دی حق حیران کړ

چې تک شین راغلو نړی ته

بیا بنفش لاړو نړی نه !

که وغواړو دګران لاهود شاعری عمومی جاج واخلو داکار په څو پاڼو کې نه شوو کولی ، داځکه چې هغه په خپل دې کم عمر او دشاعرۍ دګوتو په شمیر څوکلونو کې پښتو شعرته ډیر څه ورکړی دی . له تغزل او تمثیلی شاعرۍ نه نیولې تر فلسفی او اروایی شاعرۍ پورې نو ځکه دلاهو په شعرونو خپلې خبرې پای ته رسوم او دلاغورې شاعرۍ هیله ورته کوم .

اسحاق ننګیال کابل

۱۳۷۶/۳/

# لام الف لاهي واؤ پيښن هو

ما دي سريزې نامه «لام الف لاهي واو پيښن هو» ځکه کښښوده چې غواړم چې لاهو تاسو ښه، په زوره زير وپيژنې او دا پيژند ګلو يې زه د وسېره نه کوم، د اکتاب «بلال په وينو کې» يې کوي، د روح تصوير يې مينه لړې رنګونه لړې، حسين لړې دردونه لړې ارمانونه لړې او ويرونه لړې د د لاهو دمخ تصوير فطرت جوړ کړيدې او دفطرت دمخ تصوير لاهو جوړوي.

نرګس ته يې کتلو ستا يې سترګې جوړولې

نقاش چې دژوندون په پانه ته انځورولې

لاهو لاهلکدي، دعمر په هغه حصه کې دي چې پکې هلکان رنګين رنګين خوبونه ويني

د تصور په دنیا کې ښا پیرو سره لوبې کوي، د خیال په نیلي سواره د خندا ګلونو او خوشحالو په دنیا کې ژوند کوي. ولې لاهو د عمر په دغه برخه کې د ژوند تریخو ته مخ دی، ګیر چاپیره ګوري، د خپل وران و یجاړ وطن تماشه کوي. د دې وطن خلکو ته ګوري ظلم وینې جبر وینې د طاقتورو زورور تیاو وینې او د کمزورو بې وسي وینې او د شاعر مثال خو لکه د آینې دی چې څه له خپله ماحوله اخلي هغه خپل ماحول ته بیرته ورکوي.

ګډې ورډې ځنې ښکلې ګلاب مخ

یوځای دی د کابل سره کشمیر راوړی دی

او کله کله خو د ژوند تول تراخه د لاهو په لهجه کښې راغونډ شي او یوه داسې خبره وکړي چې لوستونکې ژړه غونې شي لکه چې وایي.

د لته د زرګون په څوکه لوټې بکارت د ګل

یا لکه چې په یو ازاد نظم «د غوښو صندوق» کې وایي

د غوښو له ټوټو نه ښځینه چغې راځي

له زړه نه مې لوګي د لوړ آسمان ښکلې خاوند ته په دعا ځي

نوای لوړه ستره خدایه!

زه به څنګه د دې غوښو په صندوق کې

د دې خواري خور کې

غوښې پیژنمه!؟؟؟

او د غسې یو بل نظم « درې پوښتنې ) یې هم د دغه ترخې لهجې څرګندونه کوي.

لاهو غواړی چې د وطن لپاره څه وکړی خو هغه بې وسه دی یوائحی دی کمزوری دی او
خپلې ټولې هلې ځلې ورته بې ثمره ښکاری لکه چې وایی

څنګه سرینښ کړمه په لاړو دیو بل سره مات غرونه

دلاهو د عمر د هلک لپاره داسې شعر ویل لویه خبره ده

ماشوم فطرت ته دیر نږدی وی او چې څومره د سړی عمر زیاتیږی دومره هغه
دفطرت نه لری کیږی. لاهو نه د ماشوموالی نه لرې دی او نه دفطرت نه دهغه پرشعر
ددی دواړو اثر شته ، لکه چې په یو نظم « سیند او تصویر » کی وایی :

– زما یار درته معلوم نه دی ای سینده

هغه ستا پشانتې سپین دی

خو کله کله هغه دخپل ماشوموالی نه ټوپ وهی او دیو زوړ فلسفی په رنګ ژوری
ژوری خبری شروع کړی لکه په « بی ګناهی » نومی نظم کی چی یوه مور دخپل وژل
شوی زوی له سینی غشی راوباسی او ورنه پوښتنه وکړی چې زه دی ولی بی زویه کړم ؟
غشی ورته ځواب ورکړی چی زه خپله بی موره شوی یم هغه پوری ونه وینی

هغه پورې ونه وینې ؟!

چې یوه ګوته یې نشته

هم هغه زما مور کې ده

دغسی په یو بل نظم « ترون » کی یی پوښتنی کړی دې چی ژوند څه دی ؟ سفر څه
دې ؟ دنیا څه ده ؟ انسان څه دې ؟ ذره څه ده ؟ منفی او مثبت څه دی او تکمیل څه دی ؟
او ورسره ورسره یی ددې پوښتنو ځوابونه هم ورکړی دی چې ژوند سفر دی سفر تذکیه

د ه کلی یو ارمان دی، ارمان پسرلی دی چې رنگ یې ښکاری او خپله نه ښکاری د

د منفی او مثبت ترون دی مثبت « هو » دی منفی « نه ) دی « نه » منطق دی « هو

د منطق تکمیل دی او تکمیل لا الله الا الله دی .

په دی عمر کی دومره ژور فکر د مستقبل د هاغه شاعر پیش گویی کوی چی خپلی
پیمانی به ځان سره پخپله راوړی. باقی خدای په خپلو کارونو ښه پوهیږی.

سید شاه سعود

بسم الله الرحمن الرحيم

# عشق په آینه کی

عشق یوه کړی ده موجودات یې دي نګین

ښکلی شینکی خوب دی په مغزولګي شیرین

عشق دسپینو پوڅولوی کاروان دی بې جلب

عشق رنګین کتاب دی دمستیو او ادب

شنه پکې تل ستوري دښایست او رنګینو

ښکلي شان معماده هر یو تکی یې عجب

عشق پریوتی سیوری دی غزل نه د پاک رب

ځکه په خورنګه هر یو بوټی شو رنګین

ښکلی شینکی خوب دی په مغزولګی شیرین

***

سپینو سپینو زرونه عشق جوړ دی دهستی

عشق یولوی اعجاز دی لکه عطر له غوټی

مسته شان لیلاده چی سپوږمی یې ده تکی

عشق نیاز بین نقاش دی هره ګوته یې لمر لمر

جوړ کړی تر ږمی نه سپین تصویر ښکلی حسین

ښکلی شینکی خوب دی په مغزولګی شیرین

***

پانه پانه نقش دی شین تصویر تصویر دیار

پښې دارمان ښکلې په ځنځیر ځنځیر دیار

سترګې ګل وریني تکی سري په رنګ دګل

شپې یې سپینې سپینې په شوګیر شو ګیر دیار

عشق طلایي وږی دغنمو دی تک ژیړ

عشق دخوښی سازدی سرود نه لري حزین

ښکلی شینکې خوب دی په مغزولګی شیرین

عشق یوه تپه ده په شپیلیو دشپنو

عشق کنګلین سیوری په تودو تودو غرمو

عشق دآزادۍ دستري توری ځلاند برېښ

عشق وریښمین آوازدی چی رازیږی له زړګو

عشق خوندور وږم دی کوچنی ته دشیدو

عشق دګل کمیس دی چې خوریږي په سادین

ښکلی شینکی خوب دی په مغزولګی شیرین

۷۵.٤.۲٦ کابل

# یو گل

راځه سترګی سره یو کړو

زه به سرې او ته دې شنې سترګی جانانه

ورنه جوړبه ترې یو ګل شي !

هغه ګل چې تن يې شين او ربل يې

سوروي ـ .

## تړون

ژوندون څه دی ؟

یوسفر دی ،

سفر څه ده !

تذکیه دی

دنیا څه ده !

په هنداره کې یو خوځن شان انځور دی ،

انځور څه دی ؟

آ ،د اصل نه یو سیوری

سیوری یو کار یکا تور دیوه څیز دی

انسان څه دی ؟

زنداني دی په یوې کلیه کُلپ کې

کلي ،څه ده ؟

یو ارمان دی

ارمان څه دی ؟

پسرلی دی ، رنګ یې ښکاري خپله نه

او رنګ څه دی ؟

سرچینه د پلوشو ده

پلوشه هم له ذروجوړه ټوټه ده

ذره څه ده ؟

یو تړون دی د مثبت او د منفی

مثبت څه دی ؟

هغه ( هو ) ده

منفي څه ده ؟

هغه (نه ) ده

او (نه ) څه ده

یو منطق دی

او (هو ) څه ده ؟

دمنطق تکمیلوونکی

تکمیل څه دی ؟

لا اله الا الله ده!

۸/۷/۱۵ کابل

# ناراو تصویر

زه دګلوله مکانه فراري شوم

دعطرونوله جهانه فراري شوم

زه له ښکلو ښکو ستر ګو بهر لاړم

دجادو له بنګالې په منتر لاړم

د پیالو هوس مې مات کړلو په زړه کې
هر خواهش مې خپل میرات کړلو په زړه کې
د شنو سترو دنیو لاس مې پریښود
څراغې شانې د ښکلو لاس مې پریښود
له دې غرونو ، نه مې تول واورین څادر کړ
هر یو بوتی مې بیلتون نه خپل خبر کړ
هغه بایست نه مې کتاب د غزل واخیست
زړه د حُسن بد رنګی نه تسل واخیست
پټ هلال مې کړ خیالي وریځو په زړه کې
کړ هر نور مې بد نظره خپل لیمه کې
خپل دماغ مې پرده پوش کړ ، له عطرونو
مات زړګی مې کلابند کړ له دردونو
خپلې پښې مې کړې راټولې له بید یاوو
خپلې سترګې مې کړې دمه له ستړیاوو

ستا هر غبرګ مې د هر ساز په تار کې وسو

ستا تصویر مې د غرور په نارکې وسو

کړومې پل نه ستا څراغ دهیلو لیرې

ستا اوربل نه مې کړو باغ دهیلو لیرې

سلسلې مې د شایست کړې خندا ماتې

اتکړې مې په جنون کړې ژړا ماتې

مسافر خوب مې را وباله لیمو ته

مرور سپرلی مې راوستو باغچو ته

دار مان قفس نه والوتم مارغه شوم

چې مارغه شوم آزاده په خپل زړه شوم

۱۲٤\۲۵\۷\۷٤

# الـقا

لیمۍ وایه د زیړ د اسپرلی دی څنګه درته یاد دی ؟

: یوه ترخه غوندی غوصه وه

په نیاز بین زړګی خوره شوه

له زړګی نه یو دوه څاڅکی ددی ځمکی په مخ توی شول

بیا داڅاڅکی په منځوکی خپل القا شول

دانامیند غوندی صورت می ورنه جوړ ۍ !!

وایه ستا دارمانه بهیر په کومو کرښواوړی ؟

وی : هغه زهر هستی په لتون ګرځم

ماورا ، می هسی خوشی په چیچلو او ځبیښلو کی سوری کړه !

خو سره له دیره قهر بیا هم مینه ورسره کړم !

۲٤\۲۵\۷\۷٤

## بوډا

هاغه پوري بوډاگوره

خپل بچوړي يې ليلام کړل

ورته وايي په ژړاکې

هر يوتن ددغه ښارنن :

که داستا اولاد پکار وي چې بيا موږيې درته راوړو

بوډا چيغې وهي هاى ! هاى !

خو بچوړي ورته وايي

آبا !

کور ته ځو ، ادې ته مونور بوځه !

# مات غرونه

شنه سهار کې دې رامات کړل د گلابو ورمېږونه
یا بدل دې شه فکرونه یا خوشل دې شه آسونه
یونری شمال یې بس وحاجت څه و دې چړوته
په غضب دې وکړل په پیروتو گوزارونه
نیمه وچه شانې پانه دې هم چیرې پیرزونکړه
خپلو لاړو نه دې ډک کړل د سپرلي شینکي لاسونه
زما فصل د خوا ریو دې داور غیږې ته ورکړ
دلمبو لاندې دې پټ کړل د گلونو سره موجونه
شنه ارواح مو د تن لاړه دوحشت چیغو کې غیب شوه
له پخوا دې زمور پاتې ناگنډلي گریوانونه

پکې ګل به دشنو هیلو قسم چیرې زرغون نشي
هسې هسې یې داغلي په سیخونو دي ذهنونه
له لوګرداسویلیو جوړووځانته چترونه
راوریږي چی له پاسه دشنو کانوبارانونه
جانه ښې مونورې نشته چې پلونه درته پریدي
هغه تیرې لارې لته پکې ګوره یاد ګارونه
درخانی دلته آدم ته په ژړا ژړا کې وایي :
چی په لوړې چیرته خوند کادرباب شینکي سازونه
ددیدن اسرې دې یاره نورې نه راځي مغزوته
دلته سیوری سرې ځارې هم لوړیږي دیوالونه
دلته جام دهر ساقی دمات تندې په وینو رنګ دی
هم دانې پراته دي دبدمستو ځنځیرونه
دلته شوراودلته وجد تبعید شوی له زړګودی
میشته شوي دي دمړو دبیرغ غمجن غبرونه
له هر کوره استفراق کې دلمبو بخرې لویږی
ددودونو نقاش کارې ویرونکې انځورونه

یو تش عکس د دارو یې طبیب ایښی دې ومخ ته

په ارمان ارمان ځوریږي ورته لرې نه زخمونه

جنازوکې دزړ گیو تاته څنگه خندا راوړم

څنگه سرېنښ کړمه په لاړو دیوبل سره مات غرونه

هغه مسته سینه لاړله بتی شوله جانانه

ناچاری نه می پری سوزي هغه کلک قوی لوظونه

دلته سیند شته اوبه نشته جوړ جیحون دې دسروو ینو

ځکه درومی په ملکونو دهیلیو آمیلونه

په ورغ سیوری ددیوانو په شپه ورک شمه له سترگو

له دی لمره طمع مکړی راته بل کړی څراغونه

هدیروکې دوختونو جسدونو سره پروت یم

یا خپه مې کړه مرگیه یامې پورته کړه ژوندونه

اننگوکې دی دحسن دښایست خاتول کړو قتل

دسرو وینو په دریاب کی دې لاهو کړل شنه خالونه

## بی گناهی

یوې مورد وژل شوي زوی سینې نه

وینې سور غشی راوویست

وې : بې زویه دې کړم ولې ؟

ورته غشی په ژړا شو

وې ویل : زه هم شوم بی موره !

هغه پورې ونه وینې ؟

چې یوه گوته یې نشته

همغه زما مورکۍ ده

همغه زما مورکۍ ده

۲/۱/۷

# خال

د شین خال په ځای دې زه وای

چې په زنه دې ویده وای

که امکان د بوسې نه وای

رانژدې خو به دې خوله وای

# سیوری

یم دیار دقامت سیوری
خیر که تل په خاورو پروت یم
اې زړګیه خپه نه شی !
سیوری تل په خاورو پروت وي .

# غزل

په چمن کې چې ګلان غاړه غړې شي
ما ته یاده ستا د عشق خوږه ګړې شي

دا ستا نوم راته څوک اخلي زنکدن کې
بنده بنده په مرۍ کې مې سلګۍ شي

ګرځوم راویشتی کاڼي دې لاسو کې
چې ورګورم پکې ستا څېره موسکۍ شي

ستا څېره راته دلمر غونډې شي نیغه
چې نظر ته مې ښکاره چیرې کېږدې شي

آشنا نوم به دې زه هو مره خوله کې ځبېښم
څو دژبې په سر پورته مې پولۍ شي

# شکریه

خــــــیــــــر دې کــــــه ازغــی یــې !
زمـــا ســــتــــرگـــــوتـه چاره یې
بــــــــــه ده چــي گــل نــه یــې
کــنـه عـــــمــــــــربـه دې لـنـډو .

# دزی پوښتنی ؟؟؟

سپیه! له څه نه زیات ځوریږي ؟

وي : دخپل قام له ځانځانی نه

مورکی دي شته ده ؟

: هو خواوس پیژني می هم نه

او پلار دی ځوک و ؟

: دخپل مطلب یو مسافرو

زما دښکلې نطفې تخم یې
وکرلو په کوځوکې

او ... خپله لاړو... !!

# غزل

چې دې په خپلې ښکلا زور واچاوه

تا مې شینکي ځنګله ته اور واچاوه

ما دې لالیچو ته لاس وړی نه وو

ښکلې بنګړیو دې څه شور واچاوه

مـاوې : چې بس دی یاره وسـومـه تهول

تـا هـغـــه اوررابـانـدی نـورواچـاوه

مـاوې : چې جـاردې لـه سـلامـه شـمـه

وی : سـتـا دتـیـر سـلام می پورواچاوه

پـرتـه لـه دې بـلـه چـاره مـی نـه وه

چې سـتـا دکـور مخ ته مې کـور واچاوه





## ددوکو انځورونه

پیغلې ولې له ګودره

بې منګینه خپه راغلې ؟

: یومې شنې نارې له زوره

د کلال لالي په ګوتو آجوړ شوی شین منګی مې

په اوږې وچاو دیدلو !

پیغلې سور سالو دې څه کړ ؟

وې : یو چا د خپل غرور او سرتور شانې عفت ته

دازما سالو څادرکړ .

پیغلې دغه ماشوم څوک دی ؟

یوبې پلاره اوبې موره    یوورزری یتیم گوتی

دخدای دې لویه نړۍ کې

تنهاماته په مینې

داسرې لاس غځولی .

پیغلې لیک اوسبق څه دی ؟

دکاغذپه سپینکې مخ کې

ددوکو انځورول دي .

پیغلې مینه وفاڅه ده ؟

وسیله داستعمال تل

دانسان په بل انسان ده .

۷/۱۰/۷۵

# یو سور گل

هغې خوله کې خپل په مینې یو سور گل نیولی وو

خو چې سم زه ورنژدې شوم، په مینې

هغه گل یې له حیا په تنکو شونډو کې او به شو...

# ټوټه

پریوتو بلال ورنه په وینوکې

ښکلي نه تور خال ورنه په وینوکې

پورته د ګلاب په رنګ رنا شوه ترې

ولوید چې هلال ورنه په وینوکې

## ویره

پرخې! تا د سره ګلاب په وصلت کېږو کړو لاړې

وې : له ویرې ځنې لاړم

چې مې نقش د پښو پاتې په ګل نه شي

# کوه طور

هرغنچه تصویر دیار

هر تصویر صورت دگل

هر یوگل ښایست ښایست

هر ښایست څاڅکی دنور

هر یونور او هر یونور

انعکاس دکوه طور

نالیدلی شان اروا

له زړګیوباسی ساه

بیا خپل ځان کاندی میشته

دزړګیو په محل

هر یوزړه یی شی ملنګ

لقب ورکړی دپاچا

سترګی توری توری شی

هیلی زوری زوری شی

دارمان په شینکي بوټي

لمبې پورې پورې شي

واخلي هر څه رنګ د ګل

راشي راشي مست ډمان

بوټي سم کاندي کاکل

ویرانه او کلک ځنځیر واخلي واخلي په یودم

مست وړانګین شان تجمل

په نصیب ځپلي عمر په چاودلو شانې شونډو

شنه قاه قاه شي ورسره داسندره شي خوره :

هر غنچه تصویر د یار هر تصویر صورت د ګل

هر یو ګل ښایست ښایست هر ښایست ځاځکی د نور

هر یو نور او هر یو نور انعکاس د کوه طور

کوه طور او کوه طور دی مخلوق د عشق سرور

۲۷/۸/۷۵

# تللی حوصله

وخته ! حوصله مې له سرواوښته

لاړله توبه مې له سرواوښته

ډیر چې پریدمه ورنه غاړوکې

آدسیند چپه می له سر واوښته

نر شه حادثې دې په ماراوله

نوره گذاره مې له سر واوښته

زه شومه ملگری دلوگوسره

باغه ستا ورمه می له سرواوښته

نه منمه سپینې ورځې نه منم

ستا د څنوشپه مې له سره واوښته

چار ته مې لاهو ساقي ناچاره شو

ډکه میخانه مې له سر واوښته

## دغوښو صندوق

دغوښوله ټوټو نه ښځینه چیغې راځي :

وای وای ! چې د پردیو دلاس ګوتې مې په سروغوښو پرتې دي

دایمان مانۍ مې وژغورۍ نړیږي ،

***

دغوښوله ټوټو نه ښځینه چیغې راځي

له زړه نه مې لوګي دلوړ آسمان ښکلي خاوند ته په دعا ځي

نواې لوړه ستره خدایه !

زه به څنګه ددې غوښو په صندوق کې ددې خوارې خورکۍ

غوښې پيژنمه ! ؟ ؟ ؟ ؟

۱/۲/۷۵

# تپوس

انګوره! دا ته ځنګه هسې خوږ یې

وی :

د ښکلي جانان شونډو یم ښکل کړی !

# ځنځیر

ګوره! خلکو یارمې په تدبیر راوړی دی

ماته په تحفه کې یې ځنځیر راوړی دی

مه یې راته وایه زه پرې خپله یمه پوه

شونډه وکې دی بیا چې څه تقریر راوړی دی

ګډې وډې څڼې ښکلی

ښکلی ګلاب مخ

یوځای دې کابل سره کشمیر راوړی دی

ټول کړه داغیار ولاس نه کاڼې دغضب

مادشیشو جام کې ستا تصویر راوړی دی

ایښی یې په څڼو کې له نازه دی ګلاب

بیا یې نن په جال کې یواسیر راوړی دی

۷۵/۴/۴ دکابل پوهنتون

## په سپینه ورځ

بابا څه کوی داڅه کړې ؟

اریکن دې دی راخیستی په دی سپینه رڼاورځ کې

وی : بچیه پریده پریده !

چې راندہ له لرې پوښی

زه مظلوم یم بی غرضه

ماونه ولې له لرې

په گولیو په مرمیو !!

## ځنځير او پسرلی

غومبورو نه داوښکو ځنځير ليری کړه

جانانه!

پسرلی دی زندانی کړ .

# مرمر

بیا مې ولوید و نظر

ستا د سپین مخ په مرمر

لکه ولویږي یو ستړی

د گلونو په بستر

دشنوستورو امیلونه

د گلونو مست موجونه

ددنیا دنیا با غونو

شنه نری نری عطرونه

په یوغږ سره راټول شول

داستا پل یې کړلو پورته

پاس یې کیښود په بصر

داسی خور شو منور

لکه ولو یږي یوستړی

د ګلونو په بستر

ستاوږوکي شانې مخ کې

چې یې ولیدل رنګونه

له حیرته هر چاوویل :

په وږجام کی دي سیندونه

له اسمانه شوراښکته

په لمنه کې یی پریوت

سپین د عجز تاج یې په سر

څه په نیاز سره قمر

لکه ولوېږي یوستړی

د ګلونو په بستر

واړه تش مې کړل خمونه

بیا لاهو مې کړل فکرونه

تعلق ځنې جلاشوم

رانه پاتې شول دښتونه

روسته ځان ته مې چې ځیر شوم

رابنکاره شول تصویرونه

وچ ډنډ ربیل یې سرونه

راغلم راغلم بې خبر

پریوتمه ستا په در

لکه ولوېږي یو ستړی

د ګلونو په بستر

## ژوند

دزهرونو په لوی سیندکې

یو سپین څاڅکې د یو قند یې

دڅراغ له مخې تیر شه

چې دې وپیژنم ژوند یې .

# کیسه

یوه پاڼه دمنې له تانده ګله

لکه ستا له ګلاب مخه دخولو سپینه قطره

وه دڅمکې په شنه مخ باندې پرته !

ورنژدې شوم پکې لیک وه

یوې لنډې زنده ګۍ حسن کیسه !!

۱/۲/۷۵

# له مریمی تپوس وکړه

وایه ځمکی ابې! ستا په ټټرهسی
دارنګین ګلان دڅه دی ؟

وی : داواړه نښانې دیو جمال دي
جمال څه دي ؟

بس یو بې ساحله بحر رنګ ښایست دی
ښایست څه دی؟

دنفرت په مرۍ پروت غوندې یو غر دی
نفرت څه دی ؟

کله جوړې چی کړي خیرنې دسره ګل په شونډ پولې

ابی !

ستا لداوسید لو مطلب څه دي؟

: زیږول او لویول !

او چاوند دې وایه څوک دی ؟

: له بارانه تپوس وکړه

مخ مې واړوه آسمان ته

وریځو داسې زمزمې کړې :

له مریمې تپوس وکړه

له مریمې تپوس وکړه

۲۷/۸/۷۵

# انځور

نرگس ته یې کتلو ستایی سترګی جوړولې

نقاش چې دژوندون په پاڼه ته انځورولې

ازل دی دسر وشونډو په جام مې دښایست توی کړل

ادایې درله درکړه په نیشه یې پوهولې

قود وقود وسنبلونه یې رنګ به اخیستلو

بیا ستاوریښیمنې څنډې یې په ناز ناز تورولې

سپوږمنی څټې رڼاوې هم اوبه کیدلې

چې ستا نازک اندام ته یې رڼاوې تولوې

ګلونو ، نه هر خواسری قالینچې خورې ورې وې

داستا په انتظار دیوبل پاڼې ښکلولې

# شک

لیرې لوپټه کړه چې تیریږمه

لاره کې تیاره ده وبه لویږمه

څومره چې پښتو پښتو کوی

هرمره می شک ډیرشي وویریږمه

# دزمانی نادودی

دملالاس کی لرگی

دجانان کوڅه کې سپی

خلکو کوم طرف ته لاړشم

زما چاودشولو زړگی

غبرګی بر کلی ته راغی

چایی مات کړلو منگی

په کړی یی وشوی لوبې

ورنه پریو تو غمی

په تهمت کی یې زه گیریم

څوک می نه آوری های هی

عجیبه پیښې راوشوی

هلته سپی دلته لرگی

دږمانو دی کوروران شی

***

ورته جوړیږي کړوپیکی

ورته لیږي نه ورگورم

سم سړی شوم لیونی

چی له جیب نه مې وباسم

داشنا بنکلی بنگړی

سم له واره راپسې شي

د کوچنیانو غټ تولگی

عجیبه پیښېږي راوشوی

هلته مرگ هلته تولگی

هلته سپی د ته لرگی

# لوڅتوب او تمدن

ونې !

ولې دې ځان لوڅ کړ

تمدن په لورې لاړې ؟

: تمدن نوم راته ماخله     له لوڅ تو به لرم کرکه

ددې ځمکې بربنډ تن مې

ولیدلو شرمنده شوم

څکه خپل ټکرې مې ورکړ

ژیړې پانې ژیړې پانې

اوف ! زما ښکلو لور ګانو !!

## انتقام

اخيستل دانتقام خو فريضه دهر افغان ده !

خوزه څه وکړم زړ گيه ؟

چې قاتل مې خپل دلبر دی ؟؟؟

# کانې

ای دلارې دسر کانیه !

ولې ولې ؟

: زړه مې چوې چاودې نشم

پښې دهر چا په مالګي

داخپل پوښ راته زندان شو .

## سزا

سینده ستونې مې له تندې نه وچ شوی

هسې ښکارې اوس به ولوېږي توتې شي

د سره اور داوږدی ژبې په شان سوردی

لاس اوپښې يې راته پرې کړې

رانژدې شه چې داوچې شي خړوبې

شنه شمال راته د سیندله سپینو چیغو یوه سانده زما غوږکې

داسې پوکړه :

داجفااو داګذار خوښايې تاسر پدی وخت کې وي شوی

خو زمايې له ازل نه درونده ن په بانه

دغه سزا لیک کړه !!

# بی ننگه ورځی

سري په تاند وو ينو اوړاورځې
څنګه غنيمت وګڼم داورځې
زه يې ديلداتيا رې ته خرکړمه
څه شاني بی ننګه شوی زما ورځې
نن مي هم په اورکې شو پرون مې هم
څنګه هيله مند شم په سبا ورځی
تاسو د ګلابو سره وخاندی!
زه به ځانته ګاله تنها ورځی

# سراو جیلخانه

دگل ونې تنې سردی څه شوایه؟

پانیو غبرګ رابانډې وکړ

هغه تاسو زنداني کړ

دمارانو جیلخانه کې

اوف! ګناه یې څه وه پانیو؟!

هغه ځوان واوړیر ښکلی .

# هدیري او قصرونه

بیا مې وینو کې خپرې تکې سرې کړی
بیا رنګینې مې دجیل توری پنجرې کړی
دسینې قفس مې مات کړلو صبرونو
نن آزادې مې قیدې شانې نارې کړی
هر ځنځیر مې په سندرو باندې راوست
هرې کړیکې سره پورته مې نغمې کړی
په ګریوان کې مې منګولې کړلې خپې
تر لمنې مې ریښې ورته اوږدې کړی
دآسمان ستورو هم کړه کړه څرګنده
تورو وریځوو کې یې پټې پلوشې کړی
لیونې توپان لمن کې خاورې راوړی

دا پستي سپيني فضاوي گردلې کړي

دجانان مې دراتللو وعده ځای کې

پسرلي رانه سيځنې خپلي غنچې کړي

هم يې جام راته زما په تندي مات کړ

هم يې خښې په زړګي کې مې شيتې کړې

ددې باغ ګلو ته چادي بدکتلي

چې يې ګډې په باروتوکي وږمې کړې

شين ځنګل مې ځنګه اورکې سوزيدلو

ځنګه غوښې دبلبلويې پخې کړې

شنه بنګړي دې ولې ليچوکې ګونګي دي

دشرنګ ناري يې چادرته ويدې کړې

چې مې ستا دراتلو لارې پرې ځارلي

دي نامرو مې هغه سترګې ړندې کړې

ماغوښتل چې پرې قصرونه تاته جوړ کړم

په هغې ځمکی یی جوړې هدیرې کړې
دیوالونو راته غور وخپل نیولی
ماچی ستاورته ترخی ترخی کیسې کړې
چی تیاره تیاره ماحول واړه رڼا شو
بیا دچاپه سریی بلی سری لمبې کړې
دکړس کړس خندا دی کومو چیغو یوړه
دځوانۍ دیوی دی چاپه پوکي مړې کړې
زما پښې خوله فولادو جوړې نه وې
ولی خښی یی په لاروکې چړې کړې
تاخوی : چی پسرلو سره درځمه
څنگه بل شوې څنگه هیرې دې وعدې کړې
دغه غرونه شاهدان وچی آڅوک و ؟
چی دسیند سپینې او به یې داسې سرې کړی
۱۲/۸/۷۵

# کانې او زړګی

ستاله بڼونه شوکومه زړګی

نورله چړونه ټولومه زړګی

چې په عمرو عمروبی خود پاتې شي

دساقی خم کی آچومه زړګی

بس په نرمښت کی می ژړا ولیده

نور مې په کانو بدلومه زړګی

خپله به کانی ورته ونیسمه

په بل به ولې ماتومه زړګی

مساپری خوله کتونه وویست

نورمې ټټر کې نازومه زړګی

٢٤/١٢/٧٥

# جیل او حلقې

څه به په خولې وایمه په زړه خبرې نورې دي
دومره درته وایم ددې لمر پلوشې تورې دي
یوځل دوریښمو په بسترکې یې طاعون راوست
بیا یې دلیلا په جنازې باندې مجنون راوست

خدازده چې دخومره زړونو وینې یې ځبیښلې دی

سپینې سپینې پانې یې په سرو وینو مینځلې دی

ډک یې له بارو تو نه زمونږ دزخمو جام کړلو

زخم وچاو دلوشنو لوګیو جوړ پرې بام کړلو

پښولاندې پرتې اوس تکې سرې حلقې دوینو دی

جیل کې زنداني یو راخورې حلقې دوینودی

ونې مو پربندې شولې پانې یې غلا شوې دی

دلته دتیکرې راوړونکې غیب او تالا شوې دی

ګله ستا دشنې مینې توکرې کې یې لمبې راوړې

ګله دسپورمۍ په زرین جام کې یې تیارې راوړې

دلته یې شنو ستوروته لوګیو نه نقاب جوړکړ

دلته ویرنامونه یې زمونږ ځانته کتاب جوړکړ

دلته زمونږ کلي ته هر ورځ یو سور تابوت راوړي

ساه یې دزوی اخلي او مورکې ته یې کالبوت راوړي

دلته د هر گل په مخ پرده داز غوجوړه ده

دلته د ښایست په نوم پنجره داز غوجوړه ده

دلته د زرگون په څوکی څیری بکارت د گل

دلته هم په زړونو کی وچ شوی دی حرمت د گل

دلته سری د ولی کی تاندی پیغلی ژړیدلی دی

دلته د غنچو پانی له تندی سوځیدلی دی

غیږ کی دلو گیو ناځی شنی شنی د گلاب وږمی

چیغو کی موغرقی شولی لاړی د رباب نغمی

مات ماتو بنگړیو نه یو شرنگ د مستی نه راځی

تش بی سره تن نه د شپون غږ د شپیلی نه راځی

خیتی دلته هلته د ملاتیری باند نښتی دی

ژبی د زقوم په بوټی ویر باندی ینښتی دی

# ناامیدی

ماویل ته به خاندی زه به ژاړمه

ته به می رټی زه به دی غواړمه

تا په خپل ښایست چی قسم راکړلو

ځکه ناامیده شومه لاړمه

# دزړي فکر خاوند حمید ماشوخیل ته

دبګرام ترکې ړندې شوې په لوګیو

سرې لمنې شوې داوښکو په غمیو

ګردلو کې دباروتو ښایست ورک دی

سرې بخرې دي نښلې په نتکیو

لوړې لوړې شنې ایرې چې درته ښکاري

دغه خوارې هدیرې دي دسپرلیو

ناامیده څه کړې کړې پراته دي

ځنځیرونه دبد مستولیو نیو

هر یو ګل یې کړلو پوند ولاندې قتل

ددې وخت تورو آسانو په مستیو

دشپنو کریږو تور غرونه وارخطا کړل

چې ایرې یې ولیدلې دکیږدیو

دسرووینو دډنډونو په سرونو

شنه خالونه وپراته دناوکیو

مالیدو چې له دې گونگې شانې ځمکې

ځنگه غبږ پورته کیدو په ککریو

شولې هضم دوحشت په تورې خیټې

شنې خوږې کیسی دگل مکیو

هغه سترگې یې تیزابو کې غوپه کړې

چې گلاب یې دعشق شین وپه ککیو

وچیدوته یې حاصل نه پریدې بام کې

چې لمبې یې دکور خیژی له کړکیو

نه یوسور سالو شکاره شو مازیگر کې

نه توتې ترسترگو کیږي دمنگیو

اورنۍ چیغې چې پورته شوې له حسنه

دغزل نغمې شوې وچې په مریو

دلته خپلوکې یې خپلې غوښې وسوې

کړه رانجه یې تورې خاورې دپردیو

تاندې شونډې ثیرې روسته باد شوې

شنه سهار کې ددې باغ دګل غوټیو

دخاټولو شینکې ونې شوې هوارې

پکې جوړې یې کړې لارې په بګیو

هر یوسپین مخ ته یې رنګ دآسمان ورکړ

په ثپیړو باندې نن خړو سیلیو

هر یوباغ دخپل سره ګل له اوره سوزي

هره دښته کړه زخمي خپلو هوسیو

کوم ړانده وه توره توره راایستلې

مړوندونه وپراته دګ له بنګړیو

یو نری شمال له بیخه وویستلی

څه بی ننګه شان ریښی شوی دخیږیو

پښتانه مغل راپیښ شول ډلی ډلی

پښتنی یی وتړلی له کمڅیو

درانه کانړی راوریږی په توتانو

له مښوکو زړونه لویږی دمرغیو

چی مړی یی نیمی پری کړی نیمی پرېښوی

غبرګ په چیغو کی ورک شوی دسلګیو

تورکمیس یی څیروی ورته بی رحمه

چی شرنګ شرنګ یی پورته کیږی له پاولیو

یوه ورځ به دی بیږی په مخ لاهو کړی

چیری وینی که یوځای شوی دزړګیو

# زه هم هویت لرم

هغوي چې دطوبی دشینکی سیوري لاندې خوب کړي

هغوي چې په سیندونو کې دشاتو لیونتوب کړي

هغوي چې جوروي څانته جامې له تاندو ګلو

هغوي چې مستوي دزړه رګونه په سرو ملو

هغوي چې په ګوتړ ومینځل شوي انسانان دي

هغوي چې میشته شوي دګلونو په مکان دي

خیر دی خیر دی تذکرې ورته زموږ هم وربنکاره کړي

په غورونو کې یې پولړه زموږه شنه ناره کړي

هغوي چې شمه نه پیژني ستورونه رناوړي

بنایست په شنې څولی کې ترې په عذرتل سترپا وړي

هغوي چې دغنچو په بکارت کوي کبرونه

هغوی چې دډوډۍ دپاره نه کوي ویرونه

هغوی چې دوریښمو په بالښت یې سر شریږي

هغوی چې نازکۍ نه دسپوږمۍ په برېښ سوزیږي

خیر خیر دی تذکرې ورته زموږ هم ورښکاره کړي

خیر موږ هم انسانان یو پرې قبوله مو ناره کړي

هغوی ته چې جنت دی هر هلک ورته غلمان دی

هغوی ته چې له ستورو غوږیدلی شین جانان دی

هغوی چې دهوسیو په بګۍ وهي چکری

هغوی چې دپیغلو ټو له سروشونډو څکي شکري

هغوی چې دباروتو په اورونو لیکي مینې

هغوی چې بې له ویری نه خبرې کوي سپینی

خیر خیر دی تذکرې ورته زموږ هم ورښکاره کړي

خیر موږ هم انسانان یو ورته لوږه مو ناره کړي

۱۶/۵/۷۵

# قلم

بيــا دی څــه امــيل پيلی له ســرو اوښکو

بيادی څــه ځنځــير جــوړ کــړی له ســرواوښکو

بيــــا په مخ دې درنجـــــو رنگونه راغــلل

ســــپـــينو زروته سنبل گلــونه راغــلل

له بنــو دی وروی ســپــين صــدفــونه

انــنگــوپــه گــل دې ځـــــاځي بــارانــونــه

منم ، بادنی له سره گله پگړی وړي
په یرغل یې ستاله مخه خولگی وړي
ستا دسترگو ښکاري ، گوري جال یی نشته
داچی داغ دی په مخ شته اوخال یې نشته
چامات کړی ستا دعشق ښکلی نیالگي دی
چاوژلی ستا له میني جوړزړگی دی
سپین مړوند دی له بنگړیو مروردی
غاړې هار دی له زړگیو مرور دی
خو زه دومره درته وایم په ماگرانه
دوتو چاره مې نه وه له زندانه
ای آشنا ! قلم دی خدای وهلی نه و
ماته په لویه لارکې مه ژاړه مینه

# چې ته لاړې

چې ته لاړې :

یو سور گل مې هم په څانگو کې

شین نه شو .

ستا د تلو سره د باغ ښکلې نیالگې مې ټول

کوچیان شول

او مالت مې نیستان شو

د شپیلیو !!

## سینداو تصویر

زما یار درته معلوم نه دی ای سینده ! ؟

هغه ستا په شانې سپین دی

پوست وریښمین دی

دژوندون ترخو ترخوته

انګبین دی ؟

لکه ته چې ویشل کیږې په دې ځمکو

هلته شنه شنیلی ، ګلونه راشنه کیږی

هغه ستا په شان په خوی او عادت یو دی .

سیند په تیږو ځان وهلو

په ژړا وژړیدلو :

نابلده مسافر یم تش پدې لاره می یون دی

یو ارمان می دژوند ون دی چې آ... صبر او سکون دی

فقط دومره په ځان پوه یم

دوجود له آئینو مې

یورنګین تصویر د یر وخت شو

مینځل شوی ... کډه شوی !!

# غزل

گل شـولې جـانانه! پېـژندل دی راته گـران شـول

بوی شـوی دعطرونو تولول دی راته گـران شـول

بارمی په زخـمـو شـولې ديار شـيـرينه درده

غـره غـوندی سنگين شوی نړول دی راته گران شـول

شرنگ شرنـگ شنه سازونه دی بنگړيو کې ويده کړل

سـپين ديار مـړونده ښـورول دی راتـه گـران شـول

سـتـرگی مـی تل شـيندې چې په مخ دی سـره رنگونه

سـپـين اومـه پيـرويه! ښکلول دی راته گـران شـول

تـاتـه چې رنـگونـه دهر رنـگ واړه يو رنـگ شـول

ورک له خـپله رنگه اوس مـيندل دی راتـه گـران شـول

يودې وړی کـونـړې دخـوبونو مـی له سـتـرگـو

تورې سـتـرگی بازه رانيـول دی راته گـران شـول

## زیږدا

چې تک سپین مخ گرانه ، ستاشو
او سوررنگ شو دخاتولو
گلابی اروا وې پوه شوی
دزړې دنیا کالبوت کې
چې شنو پاڼو څادر
وربا ندې خپور شو
عجیبه زیږدا یې وکړه
بنفشه یې منځ ته راوړه •
زه دی ومرمه اداته
پسرلی دی حق حیران کړ
چې تک شین راغلو نړی ته
او بنفش لاړو نړی نه !

# ګلورینې اوبه

دیاقوتو له بارانه به تنتر جوړوی څوک !؟

جانه ! ستا له دی وریښمو به بستر جوړوي څوک

چې منګیو کی بیا پیغلو ګل ورینی او به راوړي

پاس دسیند په آئینو کې خپل بشر جوړوی څوک

چې سپوږمی نه یې رڼاوی ، له هر ګله یې رنګ راوړ

پسرلیه ! ستا په ګوتو انځور ګر جوړوي څوک





## مننلیک

له گران استاد محمد اسمعیل یون او گران ژورنالست او لیکوال محمود کوچی نه ډیره مننه کوم چې ددغې ټولګې په خپرولو کې یې ډیرې هلې ځلې وکړې.

ږ



# « لاهــو » شاعر

له نن نه پنځه ویشت کاله دمخه لوی ښښتن (ج) د کابل د للندر په سیمه کې د رڼا یو ستـایونکی او پالونکی گل (نورمحمد) وټوکوه ، ورو ورو یې په رنگونو او ښکلاوو کې داسې رنگ کړ چې یو وخت یې ځانته پام کېده نو بیا دمینې ، عـاطفې ، ښـایست او رنگونو په سـیند کـې « لاهو » شوی و . دی د مینې اوبو دومره وړی و چې بیـا ترې نه ده خپله ځان را ایسـتـلای شـو او نه هم چا لاس ورکولای شو . « نورمحمد » د مینې او رڼاگـانو ، اهونو ،اوسېلو ،غمـونو او دردونو په یو ځای شوي سیند کې دومره غوټې ووهلې چې د دې سیند له تله یې د ښکلو گړنیو مرغلرو « شعرونو » ټولگه را جوړه کړه .

اوس چې د نورپه سیند کې د لاهو شوي « لاهو » شعرونه لولو ، نو د همدې رڼا ، ښکلا ، اهـ ، درد ، فریاد او د خپل سوي لوي چاپېرېال انځورونه موپه سترگو او ذهن کې را ټوکېږي. خدای (ج) پر لاهو ډېر مهربانه شوی ،چې له نازک احساس او خوږمن زړه سره یې ورته د شعر ښاپېرۍ هم په نصیب کړې ده . که د یو بشپړ عاطفي انسان (شاعر) د احساس غمونه د شعر الهـه په خپلو وزرونو کم نه کړي نوخدای خبر چې د هغه زړه به څومره حرکت وکړای شي ؟. « لاهو » د یوه عاطفي موجود په توگه د ټولنې هر درد او غم دومره ځورولی چې له نا چارې یې شعر ته پناه وروړې ده . د ټولنې هر دردوونکی او خوشالوونکی انځور چې د ده په شعرونو کې گورو نو هغه یو ځل د ده ذهن او زړه ته لاره کړې ، هغه یې د خپل ذهن او زړه په پردو کې تاو کړی ، د احساس په اوښکو یې وینځلی او بیا یې موږ ته په انځوریز ډول وړاندې کړی دی .

« بلال په وینو » کې د ده د انځوریزې شاعرۍ لومړۍ ټوگه ده . دوه نورې شعري ټولگې یې هم د چاپ انتظار باسي. زه د لوی خدای (ج) له دربار نه هیله لرم چې « نور محمد » دې نور هم د شعر او ښکلا وو په سمندر کې « لاهو » وي او د ښکلو مرغلرو د را ایستلو او ځلولو جوگه دې وي ، خو داسې نه چې یو وخت د ژوند د مستۍ په سیند کې دومره ډوب شي چې د ټولنې غمونه هېر کړي او د خوښۍ په څپو کې یې هر څه له یاده ووځي .

د شاعر لاهو د لا برې په هیله

اسمعیل « یون »